

# آیینهٔ اصلاح

## فرازهای از سخنان ارزشمند امام ابوحنیفه رحمه الله

تهیه کننده: عبدالخالق احسان

امام ابوحنیفه رحمه الله تعالی، همانگونه که در عرصه فقه و تدوین آن، مناظره با اهل باطل و مبتدعین و مقاومت در مقابل ظلم حکام ستمگر؛ سرآمد بوده سخنان ماندگاری نیز از خود به یادگار گذاشته است که هر نکته شان، پیام های ارزشمندی برای تمام اقشار امت اسلامی به ارمغان آورده است؛ اینک برخی سخنان شان را بدون تبصره خدمت عزیزان شنونده تقدیم می کنیم:

۱. کسی که عملش او را از حرام های خداوند باز ندارد و از گناهان منع نکند، از زیانکاران است.
۲. اگر فقها و علماء دوستان خداوند در دنیا و آخرت نباشند، خداوند دوستی ندارد.
۳. هرکس بزرگی و ریاست را در غیر وقت آن طلب نماید، همواره در ذلت و خواری خواهد ماند.
٤. هر کس علم را به خاطر عمل بیاموزد، در آن برکت حاصل شده و در قلبش رسوخ خواهد نمود و دیگران از علم او بهره خواهند برد.
٥. بزرگترین عبادت، ایمان و بزرگترین گناه، کفر است. هرکس بزرگترین عبادت را انجام دهد و از بزرگترین گناه پرهیز نماید، برای او در سایر گناهان امید مغفرت و آمرزش داریم.
٦. کسی که حدیثی را فرا می گیرد و احکامش را نمی داند، مانند داروفروشی است که داروها را گرد آورده؛ اما نمی داند که کدامیک برای چه دردی مفید است.
٧. هر کسی در مورد مسئله از دین سخن بگوید، در حالی که گمان داشته باشد که خداوند از او سؤال نمی کند که چگونه در مورد احکام دین خدا فتوا داده است، جان و دینش در نزد او بی ارزش گردیده است.
٨. هر کس قدر و منزلت خود را بشناسد، دنیا در نظرش خوار و زبون می گردد و تمام سختی های آن آسان می شود.
٩. هرکس بخواهد از عذاب آخرت نجات یابد، از عذاب دنیا، باکی ندارد.
١٠. مردی با ابوحنیفه مناظره نمود و به او گفت: از خدا بترس! امام با شنیدن این سخن ناراحت گردید، رنگش زرد شد و سرش را پایین انداخت. سپس گفت: « ای برادرم! خداوند به تو پاداش نیکو عطا فرماید، چقدر مردم به کسی نیازمندند که آنها را در هنگامی که از عملشان به شگفت می آیند به یاد خدا اندازد تا این که به اعمال و کردار خود، رضایت خدا را بخواهند. ( جلوه های از زندگی امام ابوحنیفه– وهبی سلیمان)
١١. خطیب بغدادی از امام ابوحنیفه چنین نقل نموده است که فرمود: وقتی حکمی را در کتاب الله یافتم به آن عمل می نمایم، و اگر در کتاب الله نیافتم به سنت و آثار صحیح جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم روی می آورم که توسط افراد ثقه روایت گردیده باشد؛ پس اگر در کتاب الله و سنت رسول الله صلی الله علیه وسلم حکم بدست نیاید از قول اصحاب رسول الله ( اجماع) پیروی می نمایم، و در صورت که میان آنها اختلاف موجود باشد، قول هریک از صحابه را که خواسته باشم اخذ می نمایم؛ در غیر آن طوری که دیگران حق اجتهاد را دارند من هم حق دارم که اجتهاد نمایم. ( حیات امام اعظم- علامه شبلی نعمانی )
١٢. معاصی را ذلت یافتم و ترک آنها را مروت، که این خود سپر نگهبانی است برای دیانت.


**اصلاح ملی را از اینجا بدست آورید**

**کابل:** تایمني، چهار راهی حاجي محمد داد، سرک ۴، دفتر مرکزی جمعیت اصلاح. تیلفون: ۰۷۹۹۳۹۴۰۱۵ / ۰۲۰۲۲۰۴۳۰۵

**کابل:** کوته سنگی، سرک سیلو، بلاک های شاداب ظفر، انتشارات اصلاح افکار: موبایل: ۰۷۷۸۱۹۱۳۸۲

**کابل:** شهر نو، چهار راهی انصاری، کتاب فروشی رسالت. ۰۲۰۲۲۰۳۳۵۹

**کابل:** انتشارات مستقبل مقابل بلاک های شاداب ظفر، ۰۷۷۸۸۷۰۳۰۵

**کابل:** کمپیوتر فروشی الکاموي جاده نادر پشتون، مارکیت الله نظر منزل ۲ دوکان ۲۳/ . ۰۷۹۹۳۹۰۸۱۹

**کابل:** کابل ده افغانان کتاب فروشی بیهقی

**کابل:** انتشارات بنیاد علمی و فرهنگی مسجد جامع پل خشتی ۰۷۹۹۰۱۱۱۱۱ / ۰۷۵۲۲۲۲۲۲۲

**ننگرهار:** جلال آباد، د محاکمو ریاست شاته چهل متره سرک، بنی لاس، څلورمه کوڅه، لومړی کور د جمعیت اصلاح دفتر(ابو یوسف تعلیمی مرکز) تیلفون: ۰۷۰۰۶۳۲۴۸۰

×د شیرین دل پلازې لاندې پوړ، نقیب کتاب پلورنځی. تیلفون: ۰۷۷۲۸۲۸۶۴۹ / ۰۷۰۰۹۵۶۴۲۳

**کندهار:** شهر نو هرات سرک خوشبخت صالون ته مخامخ سوري مینه د جمعیت اصلاح دفتر تیلفون: ۰۷۰۰۳۰۸۲۷۱ / ۰۷۰۰۶۶۸۹۴۸

**لغمان:** مهترلام ښار، حمزه مارکیټ تیلفون: ۰۷۹۹۴۴۲۹۲۰

**هرات:** سرک بانک خون، جادهٔ مسجد جامع باغچهٔ مهتر، انجمن اخلاق و معرفت ۲۳۵۵۹۰ -۰۷۰۰۴۳۰۲۳۳ -۰۷۹۹۲۰۶۱۹۷ - ۰۷۹۹۱۰۹۰۷۳

**بلخ:** تیلفون: ۰۷۰۰۵۴۲۲۱۱ / ۰۷۹۹۶۹۴۲۴۵

**کندز:** شهر کندز، جاده ولایت، کوچه حاجی میری، مؤسسه تحصیلات عالی سلام ۰۷۸۷۷۰۳۷۲٤

**بغلان:** پلخمری، مارکیت اتفاق کتاب و قرطاسیه فروشی رسالت ۰۷۷۷٤۷٦٤٦۹ / ۰۷۰۰۵۸۹۸۵۷

**لوګر:** مرکز، مدینه مارکیت سرک مسجد جامع، کتاب فروشی سادات، سید عبدالحمید هاشمی، تیلفون: ۰۷۰۰۰۴۴۹۸۱

**لوګر:** محمدآغه، واغجان بازار، پهلوی کلنیک حسین خیل، تیلفون: ۰۷۷۵۴۱۳۸۷۶

**پکتیا:** د ګردیز ښار، مرکزي چوک، د نـي نماینده‌ګی وحید الله: ۰۷۷۹۲۱۳۸۲۲

**خوست:** افغان تاور شاته خوست مرکزی طبی لابراتوار دوهم پوړ د جمعیت اصلاح ساحوی دفتر ډاکتر محمد ګلاب: ۰۷۹۹۱۷۴۵۴۶ / ۰۷۷۷۱۷۴۵۴۶

**تخار:** بازارچه کتاب دکان مولوی حبیب الرحمن ۰۷۷۹۶۳۴۱۹۲

**بدخشان فیض آباد:** ۰۷۷۵۲۷۰۵۰۸ / ۰۷۰۷۸۳۱۳۶۴

**زابل:** ۰۷۰۰۳۰۱۹۴۸

**فراه:** جاده مخابرات دست راست مرکز علمی و فرهنگی توحید ۰۷۰۳۲۰۲۰۴۴

**کونړ:** د معارف ریاست ته مخامخ د جمعیت اصلاح ساحوي دفتر

**پیښور:** مرکز فرهنگی اسلامی افغانستان/ تیلفون: ۰۹۱۵۸۵۲۷۹۵

قیمت یک شماره ۱۰ افغانی

# سرمقاله

# دترکیې درې اړخیزه غونډه به څه نتیجه ورکړي؟

دتیرې چهارشنبې په ورځ جمهور رئیس حامد کرزی دترکیې او پاکستان ترمنځ په اومه درې اړخیزه غونډه کې د ګډون لپاره ترکیې ته ولاړ.

که څه هم د افغانستان په اړه د ترکیې د اوسني حکومت له هلو ځلو داسې برېښي چې داهېواد په ریښتیې توګه په افغانستان کې د سولې غوښتونکي دي او له پاکستان سره هم نږدې اړیکې لري، خوا آیا دا خبرې به څه لاسته راوړنې ولري او که نه؟

حالات او واقعیتونه په ډاګه کوي چې نه پاکستاني ولسمشر آصف زرداري دسولې دخبرو لپاره کوم واک لري او نه هم ولسمشر کرزی له یوه داسې قوی موقف نه برخمن دی چې ودې کولای شي د سولې او روغې جوړې په اړه غوڅه پرېکړه وکړي او دا تمه پیدا شي چې دسولې خبرې دې یې کومه نتیجه ورکړي، ځکه چې په هیواد کې بې ثباتۍ او جګړې اصل او لوی عامل دبهرنیو قواوو شتون دی، او په افغانستان کې دامریکایي سیاستونو څخه هم داسې نه ښکاري چې دا هېواد دې وغواړي په افغانستان کې سوله او ثبات راشي، ځکه چې بیا به ددوی شتون دلته تر پوښتنې لاندې راځي.

په هرصورت په ترکیه د ددې درې اړخیزې ناستې یوه موخه دا بلل شوې ده چې هلته د دریو هېوادو په ګډه خوښه وسله والو طالبانو ته دقطر د دفتر موازي یو بل دفتر پرانستل شي، ترڅو ددوی په آند له طالبانو سره دمخامخ خبرو لپاره یو ډګر وي.

له دې وړاندې دقطر په هیواد هم له طالبانو سره بې نتیجې خبرې وشوې او هلته هم ورته دفتر پرانستل شو، خو تر اوسه نه هغو خبرو کومه نتیجه ورکړه او نه هم هغه دفتر څه رسمي بڼه غوره کړه.

له طالبانو سره په قطر کې مذاکرات د کرزي د نظر خلاف دامریکا له لوري پیل شوی ؤ، خو داسې ښکاري چې کرزی غواړي له طالب سره د خبرو لپاره یو بل ډګر پرانیزي ترڅو د خبرو طرف افغان حکومت او طالبان وي، نه امریکا، پاکستان او طالب.

بل خوا ځینې طالب مشران له پاکستان نه ګیله من ښکاري او هغه باور چې څو کاله وړاندې ددواړو خواوو ترمنځ موجود ؤ، اوس مهال هغه باور له منځه تللی دی، همدا راز دطالبانو ډیرې مشران اوس هم دپاکستان په زندانونو کې پراته دي، نو په داسې حالاتو کې به څنګه دپاکستان ولسمشر وکولای شي دسولې په خبرو کې کوم رول ولوبوي.

داسې ښکاري چې لکه څنګه په قطر کې ددفتر په نامه ډیر طالب چارواکي له صنحې څخه لیری کړل شول او په هغه هېواد کې یې میشت کړل، داځل په ترکیه کې هماغه لوبه تکراریږي.

بل خوا په تېره څه موده کې د وسله والو طالبانو مشر ملامحمد عمر مجاهد په وار وار داخبره تکرار کړې ده چې د سولې دخبرو اترو لپاره ددوی یوازینی آدرس په قطر کې ددوی سیاسي نماینده ګی دهَ، نو او چې د افغانستان ، پاکستان اوترکیې هېوادونه او په غالب ګومان دسعودي عربستان په مرسته غواړي په ترکیه کې دطالبانو بل دفتر پرانیزي، دا په خپله دا ښکاروي چې دا ډول دفترونه د خبرواترو او دستونزو د حل لپاره نه دي بلکې دهغه سیمه ییزو سیاسي لوبو د پرمخ بیولو لپاره دي چې په سیمه او نړۍ کې د ګڼو نویو را ټوکېدلیو ځواکونو تر منځ شتون لري او په تاسف چې کله ناکله یې افغانستان د دې سیالیو ډګر ګرځي او د افغانستان په سیاست ناپوه سیاست مداران هم پرته له دې چې د لوبې پر اصلي موخه پوی شي، پدې لار کې استعمالیږي.

په ټوله کې ویلای شو چې د ترکیې درې اړخېزه سرمشریزه غونډه چې ددې کرښود لیکلو تر مهاله لا روانه ده، داسې نه ښکاري چې د افغانستان د سولې، ثبات او ستونزو د حل لپاره به کومه کوټلې طرحه وړاندې کړې یا به یې ګډونوال وکولای شي د جګړې دختمولو لپاره پر یوې نېغې لارې سره سلا شي.




بجز اصلاح اراده دیگری ندارم

هفته نامه

اصلاح ملی

اونیزه

داسلام داصیل فهم منبر

Email:eslahmilli@gmail.com

Www.EslahOnline.Net

دلیکوال پلاوي تر نظر لاندې

دامتیاز خاوند:

جمعیت اصلاح وانکشاف اجتماعی افغانستان

رئیس هیأت تحریر:

عبدالفتاح جواد

مدیرمسئول:

نقیب الله حمید 0774327438

آدرس بانکی: جمعیت اصلاح وانکشاف اجتماعی افغانستان کابل بانک

A/c No=1001202080036

(افغانی)

آدرس بانکی: جمعیت اصلاح وانکشاف اجتماعی افغانستان کابل بانک

A/c No=1001201080036

دالر امریکائی

دیزاینر: محمد مسلم حریر

Mob:0788298571




در حاشیه قتل یک دختر متعلم در کاپیسا:

# غوغای بیجا و ماجرا جویی های بی مورد!

احمد ضیاء رحیمزی

هرچند موضوع پامال شدن حقوق زن در جامعه سنتی افغانستان , پیشینه تاریخی دارد ولی با رویکار شدن نظام جدید در افغانستان پس از سقوط طالبان سر وصدا ها درمورد پامال شدن این حقوق بیش از همه مورد توجه برخی رسانه ها, حلقات ونهاد های قرار گرفت که دفاع از حقوق زن را به شکل پروژه های تمویلی از موسسات وکشورهای خارجی در کشور جنگ زده وجامعه سنتی ما ترویج دادند.

در کنار این امر برخی از حلقات ونهاد ها از موضوع دفاع از حقوق زن وتحت این عنوان که به قول معروف حقوق حقه زنان در جامعه زیر پا شده گاه ناگاه حتی ارزش های دینی ومعتقدات جامعه را نیز به چالش کشیده وبرخی دیگر از همین گونه حلقات با استفاده از خشونت سنتی علیه زن در این جامعه وجاروجنجال های مربوط به آن استفاده نامشروع سیاسی نموده , بساط سیاست مداری واستفاده جویی خود را در این کشور وبین جامعه ما پهن نموده اند.

قضیه کشته شدن یک تن از متعلمین مکتب نسوان در ولایت کاپیسا در حین پروسه واکسیناسیون اطفال ,که هفته پیش اتفاق افتاد نیز از همین گونه قضایا بود که عده خواستند با استفاده از این دوسیه جنایی بازار سیاست مکاره گری خود را گرم سازند واز آن برای بدست آوردن پروژه های جدید وتمویل خارجی استفاده نمایند.

در شرایط کنونی کشور وجامعه که بیش از سی سال است در جنگ تحمیلی اجانب می سوزیم ومی سازیم موضوع کشته شدن این گونه افراد اعم از معلم ومتعلم آنقدر موضوع جدی نبود که برخی از تاجران میدان سیاست,انجو های مدافع حقوق زن و رسانه های که بیشتر به فتنه پردازی می اندیشند تا کار رسانه یی, آن را انعکاس دادند ولی با وجود این همه چندی از رسانه های صوتی وتصویری که از یمن دیموکراسی تحمیلی غرب بر افغانستان سرکشیده اند, واز زبان ونظر کسانی که بیشتر به آسیاب غرب آب می ریزند تا تفکر در مورد منافع ملی کشور , این قضیه را به حدی انعکاس دادند که گمان می رفت شاید داغ ترین موضوع افغانستان جنگ زده همین است وسایر همه مسایل اعم از مسایل داخلی ومسایلی که مربوط به کشورهای خارجی ودوستان بین المللی افغانستان است ,حل گردیده اند.

یک عده از همین قماش افراد ونهاد ها با در میان کشیدن پای مخالفین مسلح دولت افغانستان دراین قضیه می خواستند به این قتل که به اساس راپور ارگانهای ذیربط کاملاً یک قضیه جنایی وجرمی بود, رنگ سیاسی بدهند وباز هم به قول معروف بازار سیاست مداری زنانه خود را توسط آن گرم نگه دارند.



متاسفانه فضای رسانه یی وجو تبلیغاتی حاکم برکشور زمینه چنین امری را برای همه آنهایی که با نظریات شاذ سیاسی واجتماعی خود در رسانه های یاد شده به بحث ومناقشه می پردازند, مساعد ساخته است واین عده افراد با وارونه جلوه دادن حقایق وواقعیت ها اذهان عامه مردم را که کمتر به عمق قضایا می پردازند, به خود مصروف ساخته وبازار سیاست نا میمون خود را رونق می دهند.

بدون شک کشته شدن هر انسان وبه خصوص کشته شدن یک دختر ویک خانم بی گناه در کشورو جامعه در خور نکوهش وگام نا پسندیده ونابخردانه شمرده می شود ولی با این همه وارونه جلوه دادن حقایق تنها برای منافع شخصی یا بدست آوردن چند پروژه تمویلی توسط آن نیر کاری نیست که بتوان آنرا ستود وتوصیف کرد .

معلوماتی که از همان ابتدای قضیه کشته شدن انیسه متعلمه یکی از مکاتب نسوان ولایت کاپیسا ,توسط ارگانهای ذیربط ارائه شده بود

نشان میداد که این قضیه کاملاً یک قضیه جنایی بوده وربطی به مخالفت های سیاسی یا هم شعارهای دفاع از حقوق زن نداشته است ولی با وجود آن هم نهاد ها وارگانهای استفاده جو این موضوع را هم به میل وخواسته خود همچو قضیه ملالی یوسفزی دختر پاکستانی که بنام مبارزه برای گشوده شدن مکاتب در منطقه خود هدف مخالفین مسلح قرار گرفت, به یک قضیه کاملاً سیاسی مبدل سازند, چنانچه در ابتدا برعلاوه نهاد ها وسازمانهای یاد شده زنانه , حتی برخی از مقامات دولتی واز جمله وزیرصحت عامه نیز به این باور بودند که این دختر بخاطر اشتراکش در پروسه واکسیناسیون هدف قرار گرفته است اما بعد ها معلوم شدکه چنین نبوده است.

انجو ها ونهاد های مدافع حقوق زنان درافغانستان ورسانه های که قبلاً از آن تذکر به عمل آمد خواستند با این شعارها که چرا قضیه حمله ناکام برجان ملاله یوسفزی دخترپاکستانی, درسطح دولت افغانستان به چنین حدی جدی گرفته شد ولی برعکس به کشته شدن یک دختر ویک متعلم افغان که در جریان پروسه واکسیناسیون اطفال توسط افراد نامعلومی به قتل رسید, چندان توجه صورت نگرفت, خواستند به همان اهدافی دست یابند که برخی مقامات دولتی در کابل با اشاره حامیان بیرونی شان از قضیه ملاله یوسفزی بدست آوردند .

بدون شک قضیه ملاله یوسفزی نه تنها در افغانستان بلکه درسطح جهان مورد توجه زیادی قرار گرفت ولی نباید فراموش کرد که بزرگ ساختن قضیه به خود افغانها واداره کنونی افغانستان ارتباط نداشت ودر اساس پروژه ای بود که باید ازجانب اداره کابل وسایر کشورها وسازمانهای که همیشه ودر هر موضوعی دید امریکا را ملاحظه می کنند, مطرح می گردید وبه همین دلیل هم بود که بنا بر فرمایش زمامداران غربی مقامات دولتی وحکومتی در افغانستان, قضیه ملاله یوسفزی را ورد زبان خود ساختند وحتی محافل دعا خوانی نیز برای آن مرتب کردند.

از سوی دیگر قضیه ملاله یوسفزی خواسته یا ناخواسته به سیاست جهانی عصر حاضر ربط پیدا کرده بود واداره کنونی افغانستان هم که وابسته گی های چند جانبه به این سیاست وسیاستمداران جهانی دارد, مجبور است تا با خواسته های این نظام جهانی سربجنباند, ولی در قضیه انیسه متعلم و واکسیناتور ولایت کاپیسا جریان سیاسی نبوده وبه اساس تحقیقات صورت گرفته قضیه قتل این دختر بیشتر رنگ جنایت جرمی دارد وبه هیچ وجه نمی توان آنرا به سیاست ربط داد.

با توجه به این همه مسایل به صراحت می توان فهمیدکه آنانیکه قضایای این گونه را وارونه وخلاف واقعیت های موجود پرداز می دهند ,وغوغا بر پا می نمایندکه حقوق زن در افغانستان پامال است , نه تنها هیچ گونه تعهد و وفا داری به مردم , ملت وبه خصوص زنان ستم دیده این مملکت ندارند , بلکه برعکس دشمنان اصلی حقوق بشر , حقوق زن ودشمن اصلی تعلیم ومعارف درکشور شمرده می شوند.

این عده ارگانها یا شخصیت ها ونهاد های مدافع از حقوق زنان با پرداز دادن به این قضیه , نه تنها کاری در دفاع از حقوق زن انجام ندادند بلکه با تاکید روی این موضوع که انیسه به دلیل متعلم بودن وواکسیناتور بودنش کشته شده است, خوف وهراس نا مرئی را در بین مکاتب دخترانه وسایر ارگانهای تعلیمی وتحصیلی انتشار دادند که این خود جفایی است در حق زنان مظلوم وستمدیده کشور.

جالب این جاست که نتیجه تحقیقات انجام یافته دراین موضوع,به وضاحت نشان می دهد که قتل انیسه یک موضوع خانواده گی وجنایی بوده وهیچ ربطی به طالبان ومخالفین مسلح دولت ندارد, پس لازم است تا از این مدعیان کاذب دفاع از حقوق وتعلیم زنان پرسیده شود که این همه غوغا سردادن برای چه وبه منظور کدامین اهداف دشمنانه بود و از کدام جریان ویا کدام کشور در این راستا اخذ فرمان نموده بودند؟

به همین گونه بیجا نخواهد بود تا از این طبقه پرسیده شود که چرا در هنگامی که ده ها تن از هموطنان مظلوم ما در اثر حملات وحشیانه نیروهای خارجی در اطراف واکناف این کشور به خصوص در ولایت های جنوب وشرق افغانستان جان های شیرین خود را از دست می دهند وفدای اهداف ودوستی آنهایی می شود که به این انجیو ها ونهاد ها پول می دهند, صدای اعتراض خود را بلند نکردند واز اتلاف حقوق زنان در آنجا صحبت نکردند که حالا ودر یک قضیه جنایی کشته شدن یک دختر این غوغا را سرداده اند؟

پایان

# جمعیت اصلاح، افغانستان شموله اسلامي خوځښت دی

## چې په دیني جذبه کار کوي او د خپل ولس ارمانونه پالي

# دجمعیت اصلاح ځانګړینه ده چې د هیواد هرې طبقې ته پیغام او پروګرام لري!

یادونه:



جمعیت اصلاح د رسنیو، تعلیم، روغتیا، خدمت او تربیت ترڅنګ د دعوت او اصلاح په ډګر کې هم فعال او ځلیدلی خوځښت دی، چې هیواد په لر او بر کې پروګرامونه او فعالیت لري، د قرآن کریم پیغام خپروي او د نبوي سیرت دورې او درسونه جوړوي او د اخلاقي ارزښتونو ساتنه کوي، چې په دغه کار سره یې د ولس د بیلابیلو پرګنو پام او توجه هم وراړولې ده او د پلویانو کچه یې هم په پراخیدو ده.

دا چې په ټاکلې توګه د ۱۳۹۱ ل کال پلان او برنامه څه وه؟ څه پروګرامونه یې درلودل؟ او په راتلونکي کې یې څه په پام کې دي؟ د دغه دیني خوځښت د دعوت او ارشاد څانګې له مسئول قدرمن عبد الفتاح جواد سره مو پدې اړه مرکه کړې ده چې دلته یې لولئ.

**اصلاح رسنیز ګروپ**

**اصلاح: روان لمریز کال دجمعیت اصلاح له لوري د رسول الله صلی الله علیه وسلم دکال په نامه نومول شوی دی، ددې نومونې مقصد څه دی او په دې اړه به څه کارونه ترسره کیږي؟**

**جواد:** په امریکا کې د اسلام د ستر پیغمبر حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د سپکاوي په موخه د دغه سپیڅلي شخصیت او مبارک ذات په اړه یو ناوړه فلم جوړ او ننداري ته وړاندې شو چې د نړۍ په ګوټ ګوټ کې یې د یونیم میلیارد مسلمانانو قهر او غوسه را وپاروله، لاریونونه وشول، حکومتي او ملکي سطحه د دغه غیر انساني او غیر اخلاقي کار غندنه وشوه او هر چا د خپل توان په اندازه غبرګون وښووه.

جمعیت اصلاح هم پدې اړه خپل دریځ څرګند کړ، د اعلامیې په ترڅ کې یې دغه جنایت وغنده او د هغه د عاملینو د محاکمې غوښتنه یې وکړه او دغه کار یې د یوې اداري یا څوتنو شخصي عمل نه بلکې د غرب د عقلیت او حکومتونو، په ځانګړي ډول د اوباما د اداري رسمي دریځ یې وباله.

جمعیت اصلاح پدې اړه یوه مظاهره هم په لاره واچوله چې په سلګونو هیوادوالو پکې برخه واخیسته او په افغانستان کې یوه نمونوي او بیلګه مظاهره وه، مظاهرې ته د جمعیت اصلاح د مرکزي شورا رئیس استاد نصیراحمد نویدي د وینا پرمهال اعلان کړه چې ۱۳۹۱ ل کال به له رسول الله صلی الله علیه وسلم نه د دفاع کال وي، ددې معنا داده چې په دغه کال کې به د ګران پیغمبر صلی الله علیه وسلم د شخصیت ، ژوند او کړندود په زده کولو او په خپل ژوند کې د هغه د پلي کولو پوره هڅه کیږي او ترڅنګ به یې نړیوالو ته ثابتوو چې تاسې د هغه مبارک په اړه درست معلومات نلرئ، هغه د انسانیت لپاره د نجات وسیله او د عالمیانو لپاره رحمت وو، تاسې هغه د دښمن په فلمونو او د دوستانو په ناوړه کردار کې مه ګورئ، بلکې د هغه په خپل ژوند دود او سیرت کې یې پیدا کړئ .

**اصلاح: په ځینو ولایاتو کې تقریبا هر کال دقرآن پوهنې څو څو دورې ترسره کیږي، ولې بلخوا ځیني ولایات دي چې په دې اړه هلته هیڅ پام نه کیږي، ددې وجه څه ده؟**

**جواد:** مونږ ټول ملت ته پیغام لرو، دا زمونږ دنده او مسئولیت دی چې د قوم، سمت، رنګ، ژبې او سیمې له توپیر پرته ټول ولس ته د الله جل جلاله پیغام او د اسلام درست فهم او پوهاوی ورسوو، دا چې په ځینو سیمو کې د قرآن پوهنې دورې جوړې شوې او په ځینو کې لا ندي نو ددې اصلي لامل دا دی چې مونږ هغو سیمو ته اولویت او لومړیتوب ورکړی دی چې هلته غوښتنه شوې ده او د دغو دورو د جوړیدو لپاره خلکو په خپله هراړخیز ملاتړ ښودلی دی، که د پاتې سیمو خلک دغه ملاتړ او تایید برابر کړي مونږ هلته هم له ځنډ پرته دغه کار ته اقدام کوو.

**اصلاح: دقرآن پوهنې دورې اصل مقصد څه دی، او په دې دورو کې ګډون کونکو ته څه وړاندې کیږي؟**

**جواد:** د قرآن پوهنې اصلي مقصد په ولس کې د اسلام درست او صحیح پوهاوی خپرول او د ټولنې د وګړو د تصور او فکر جوړول، د اعمالو اصلاح او د اسلامي دعوت په کار کې د هغوی شریکول دي، چې دورې تر ډیره پدې اړه مفیدې او موثرې دي،

مونږ پدې دورو کې د قرآن کریم پیغام خلکو ته رسوو، د توحید، رسالت، فکر آخرت، له کبایرو نه ځان ساتل، د بندګانو خپل مینځي حقوق، انفاق فی سبیل الله، د اسلام پنځه بناوې، د ایمان معنا ، مفهوم او غوښتنې او په

دین باندې د استقامت او ثابت پاتې کېدو لارې چارې، علم او سواد د قرآن په رڼا کې، او داسې نور موضوعات بیانوو چې د فرد، کورنۍ او ټولنې په جوړولو او سمولو کې ډېر مثبت او ګټور رول لري.

**اصلاح: په روان کال کې تر دې دمه دهیواد په سطح څومره دقرآن پوهنې دورې ترسره شوي دي او په کومو ځایونو کې؟**

جواد: سږ کال په هیواد کې ۱۹ دورې وشوې چې درې دورې په جلال آباد کې ، یوه یې لغمان کې، نهه دورې په کابل کې ، درې دورې په هرات کې، یوه دوره په لوګر کې ، یوه دوره په کندز کې او یوه دوره په بغلان کې ترسره شوه چې په مجموع کې ترې په لکونو هیوادوالو ترې نه ګټه واخیسته.

**اصلاح: ددې دورو نتیجه څه وه؟**

جواد: د دورو نتیجه الحمدلله زموږ له تصور او اټکل نه زیاته مثبته او ګټوره وه، خلکو ته په ډېره ښه او پراخه کچه د دین پیغام ورسیده، هغوی ته د ژوند په ورځنیو چارو کې د شرعي احکامو د زده کړې زمینه برابره شوه، د انفاق فی سبیل الله زمینه ورته جوړه شوه، د هغوی هیلې راوټوکیدې او امیدواري ورته پیدا شوه چې اوس هم داسې یو افغانستان شمول اسلامي خوځښت شته چې په دیني جذبه کار کوي او هغه آرمانونه پالي چې افغان مسلمان ولس د هغو د تحقق لپاره د تاریخ په هر پړاو کې قرباني ورکړې دي.

ددې دورو له پیل کیدو سره د جمعیت اصلاح خواخوږي او پلویان هم زیات شوي دي او د هیواد په لر او بر کې یې ملاتړ ترلاسه کړی دی، د ولس لخوا یې مالي او ځاني تایید زیات شوی دی، موږ ته یې ډېره هیله او ډاډ را کړی دی چې ان شاء الله د افغانستان مسلمان وګړي د اسلامي ویښتابه او بیدارۍ سره دي او هر څوک چې د فرد اصلاح، د کورنۍ اصلاح او د ټولنې اصلاح غواړي نو دوی به ورسره اوږه په اوږه ولاړ وي.

**اصلاح: په دې دورو کې خو عام وګړي ګډون کوي آیا د مثقفو او زده کړو خلکو لپاره هم څه برنامې لرئ؟**

جواد: ولې نه دا خو د جمعیت اصلاح ځانګړنه ده چې د هیواد هرې طبقې ته پیغام او پروګرام لري، نارینه، ښځینه، مشران، ځوانان، علماء، انجینیران، ډاکټران، محصلین، استادان، د دیني مدارسو طلاب، د ټولنې عام وګړي، لنډه دا چې هرچاته د پیغام ترځنګ داسې چوکاټ لري چې هغوی پکې تنظیمیدای شي او د ځان جوړونې او ټولنې ته د خدمت زمینه موندلای شي.

نو جمعیت اصلاح د باسواده او مثقفو خلکو لپاره کنفرانسونه، سیمینارونه، غونډې، د بحث او خیړنې په موخه ګردي میزونه جوړوي، علمي رحلې ترتیبوي، د هغوی لپاره مجلې او جریدې لري، کتابونه ورته چاپوي، د بروشرونو په وسیله هغوی ته جهت او لوری ورکوي، فکر او تصور یې جوړوي، د دینداری او امانت تر څنګ په هغوی کې د هیواد او ملت ته د خدمت جذبه پیدا کول غواړي.

**اصلاح: د قرآن پوهنې د دورو ترڅنګ مو سږ کال څه نور پروګرامونه لرل؟**

جواد : د الله جل جلاله په فضل او مرسته موږ سږ کال د شعبان او رمضان په میاشتو کې د هیواد په لر او بر کې د قرآن کریم د مکمل تفسیر ۳۵ دورې درلودې چې په زرګونو کسانو پکې ګډون کړی و، په مساجدو کې مو د اعتکاف برنامې درلودې، د سیرت النبی مسابقې او دورې مو لرلې، د ختیز، شمال او مرکز په زونونو کې مو تربیتي سیمینارونه لرل چې د جمعیت اصلاح غړو، همکارانو او همفکرانو پکې په پراخه کچه برخه اخیستې وه، د ټولنیز خدمت په برخه کې مو په کابل او جلال آباد کې د ( کوچنی صدقه او ستر اجر) کمپاین درلود چې د هیواد د شتمنو خلکو نه مو مرستې واخیستې او په نادارو او فقیرو خلکو مو وویشلې، د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه د دفاع کنفرانسونه او غونډې مو جوړې کړې، ددې ترڅنګ مو د اختر مبارکي محفلونه او د لوی اختر په ورځو کې د قربانۍ پوستکو راټولو یو پراخ کمپاین هم وکړ چې الحمدلله ولس پکې پوره همکاري وکړه او ان شاء الله لدې لارې راغلې مرستې به ټولې د دعوت الی الله په چارو او کارونو کې مصرف شي.

**اصلاح: په ژمي کې څه پروګرامونه لرئ؟**

جواد: موږ به ـ ان شاء الله ـ د پخوا په څیر د ژمي د رخصتیو نه په ګټې اخیستو سره د قرآن کریم د تفسیر دوه میاشتینی ګڼې دورې جوړوو، ترڅو زموږ هغه وروڼه او خویندې چې فرصت لري د قرآن کریم له مقاصدو، احکامو، غوښتنو او پیغام سره آشنا شي، موږ پدې اړه خپلو ساحوي ځانګو ته هدف ورکړی دی او هغوی ورته پوره چمتو والی نیسي.

دغه راز به د سیرت درسونه ، دورې او مسابقې هم دایروو ترڅو زموږ ځوان نسل په ښه توګه له خپل پیغمبر صلی الله علیه وسلم او د هغه له ژوند سره تړاو پیدا کړي او خپل سیرت او کرندود په هماغه بڼه برابر کړي.

موږ به ان شاء الله د حوت په میاشت کې له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د مینې او محبت یو هیواد شموله اوونیز کمپاین هم په لاره اچوو، چې په ترڅ کې به یې زموږ غړي، همکاران او همفکران د بیلابیلو وسایلو په کارولو سره ددغه هدف لپاره منډه او تړه کوي.

پدې اړه به له تاجرانو او مالداره خلکو سره اړیکې نیسو چې هغوی دغه هیواد شموله کمپاین سره مرستې وکړي او هغه تمویل کړي، له علماوو او د تعلیمي ادارو له مدیرانو او استادانو سره به اړیکې نیسو څو د جوماتونو له منبرونو او د ښوونځیو او پوهنتونونو له ستیج نه د خپل ګران پیغمبر صلی الله علیه وسلم سره د مینې او محبت اظهار وکړو.



# یوه ورځ په ارګ کښې

معلم وطن ګل

د روان کال د لوی اختر نه درې ورځې وړاندې د سې شنبې په ورځ د افغانستان د دولتي پوهنتونو رئيسان، د پوهنځيو رئيسان، او د خصوصي پوهنتونو استازي د لوړو زده کړو وزارت ته رسما دعوت شوي وه. د څاښت لس بجې د وزارت د غونډو په تالار کې د لوړو زده کړو وزيرښاغلی عبيد راغی او له جمهور رئيس کرزي سره د ملاقات د اجندا په هکله يې لنډه خبره وکړه. نوموړي وويل چې بلنه د ولسمشر لخوا ترتيب شوې او د هيواد د راتلونکو سياسي حالاتو په هکله پکې څرګندونې کوي. هلته به وکتل شي که مجلس ازاد او هر څوک کولی شي خپل نظر ووايي، او که مجلس ازاد نه و نو يو يو تن به د دولتي او خصوصي پوهنتونو په استازي توب خبرې وکړي. د وزير صيب په وينا استاذان کولی شي خپل وړانديزونه او نظريات مخکې له مخکې هغوی ته وسپاري. بيا په خپله وزير صيب له حاضرينو څخه په اجازه اخستلو ودير صافی د دولتي پوهنتونو او شريف فايض د خصوصي پوهنتونو استازي وټاکل.

د غرمې پاو کم دولس بجې له وزارت څخه ارګ ته وخوځيدو، ماسپښين لمونځ مو د ارګ په واړه مسجد کې چې ولسمشر هم ورته راووت د ارګ د امام په امامت په جمع ادا کړ، له لمانځه وروسته ولسمشر له ټولو سره لاس په لاس ستړي مشي وکړه او په ګډه سره د ډوډۍ ځای ته ولاړو. ډوډۍ له مخکې نه په ميزونو باندې ترتيب شوې وه. ډوډۍ عادي، مناسبه او خورا خوندوره وه. په غوريو کې شوله وه، ورسره يو قاب شلغم او يو قاب د پسه غوښه وه. دا او يو قاب سلاد، يو قاب وطنی تور انګور او يو قاب شنه ناک و، دا ټول په څلورو تنو.

له ډوډۍ خوړلو وروسته سمدستي غونډه پيل شوه، يو تن وياند له مخکې څخه منظم شوی مايک وکړنګاوه، له يو څو مقدماتي تشريفاتي کلماتو وروسته يې د ارګ امام د تلاوت لپاره ور وغوښت. تلاوت او دعا وشوه او ولسمشر کرزي خپله وينا پيل کړه او له مقدمې وروسته يې ۲۰۱۴ کال سره د بهرنيانو له وتو او وروسته د جمهوري رياست د ټاکنو موضوع مطرح کړه، د جمهوري رياست د ټاکنو په ارزښت او اهميت يې ډير ټينګار وکړ او داسې يې ښکاره کوله چې د افغانستان د بحران د حل کلي همدغه راتلونکي رياستي ټاکنې دي، او يا دا چې تابه ويل اصلا په هيواد کې کومه ستونزه شتون نلري او يوازې او يوازې همدغه د ټاکنو پروسه ده چې دی او د ده پلويان يې بايد وګټي.

د خبرو په ترڅ کې يې امريکايان او انګليسان ډير کلک وغندل او هغوی يې د افغانستان دښمنان او د ستونزو عاملين وګڼل، او له هغو سره يې د خپلو مخالفتونو، مقابلو، او آن د ده په اصطلاح د مکرر شور او غالمغال پورته کيدو يادونه وکړه، او ۲۰۱۴ نه وروسته د بهرنيانو پر وتو د ډول ډول ستونزو، ويرونو او تشويشونو او انديښنو رامنځ ته کيدل يې د دوی تبليغات معرفي کړل او دا چې دوی غواړي مونږ وويروي څو د دوی هر ډول شرايطو ته غاړه کيږدو.

هغه د خپلې اوږدې مقدمې نه وروسته خپل اصلي مقصد چې ورسره په راتلونکي ټاکنو کې علمي مؤسسات د ځان ملګري کول و، مطرح کړ او ويې ويل چې مونږ اوس دوه اپشنه (لارې) په مخ کې لرو لومړی دا چې همدا اوس جمهوري رياست لپاره خپل کانديد اعلان کړو او د هغه لپاره کمپاين وکړو، او يا دا چې پريږدو چې دغه بازار ګرم شي او وروسته بيا په سلا او مشوره خپل کانديد اعلان کړو.

هغه دا هم وويل چې تراوسه خو چې څوک ميدان ته راوتي دي د انګلستان اجنټان دي. هغه د اشرف غني احمدزي يادونه وکړه او هغه يې لږ وستايه او ويې ويل څې په تيرو ټاکنو کې زما په خلاف ولاړ وه او آن چې ما ته يې ظالم او... هم ويل خو له ټاکنو وروسته مې راوغوښت او ورته ومې ويل چې خير دی بايد تا هغه وخت کې په ما پسې څه ويلي نه وای خو اوس رازه او کار وکړه. او دا دی اوس يې د امنيت د انتقال په پروسه کې د قدر وړ خدمات وکړل. هغه د والي عطا محمد نور يادونه هم وکړه چې له ټاکنو وروسته يې ورته د کار فرصت ورکړ، سره لدې چې کولی يې شول په يوه لاسليک سره يې له کاره ګوښه کړي.

هغه په تيرو ټاکنو کې د يوناما د نفوذ، تاثير او لاسوهنو يادونه وکړه او دا چې څنګه يې کامياب ناکامول او ناکام يې کاميابول! هغه د جمهوري رياست او ولسي جرګې د تيرو ټاکنو د پايلو کيسه وکړه چې هغوی په غټه شميره رايې له ځان سره ريزرف ساتلې وې چې يې غوښتلی له هر چا سره يې ګډې کړي او هغه کامياب اعلان کړي او ويې ويل چې ماته يې اخطار راکړ چې دوی کولی شي دې ناکام اعلان کړي او د دغو رايو په يوځای کولو سره هغه بل ګټونکی اعلان کړي!

هغه له خپلو خبرو وروسته حاضرينو ته د خپلو نظرونو د ويلو ازاد وخت ورکړ، او حاضرين هم د ده له خوا په همغو دوو ټکو غږيدل او

زياترو په لږ ډير تغيير سره د هغه رايه او نظر تائيداوه. د حاضـرينو پـه منځ کې مولوي صيب لبيب، مسلميار، او عبدالواحد کريمي هم و.

ما څه وخت انتظار وکښ، خو بيا مې زړه کې ويـل چې راځه‌دا يـو فرصت دی او بايد پټه خوله پاته نشم او د هيواد د راتلونکې په هکلـه بايد زمونږ خپل تصور پرته له نوم اخستو څخه مطرح کړم، او لاس مې د نوبت لپاره پورتـه کـړ، او بـالآخره نوبـت راورسـيد او پـه عربـې لـه حمد، ثنا څخه او معرفي نه وروسته مې عرض وکړ:

زه دريم نظر لرم، کيدی سي د بحث لوری بيخي بدل کړي. مـونږ پـه راتلونکې مرحله کې د جمهوري رياست له انتخاباتو څخه مهمه مسئله په مخ کې لرو چې هغه زمونږ ملي او ديني اولويـت جـوړوي، هغـه د افغانستان د ولس راټولول او يـو کـول دي. پـه افغانسـتان کـې جنـگ جګړه او دهغه اسباب او لاملونه ختمول دي، جګړه ختمول او ولس يو کول دي.

زه د شرعي علومو د يو متخصص په توګه په شرعي استناد خبره کوم، زما خبرې به سپينې او صفا وي او لږ ورته ښه پام وکئ:

مونږ پدې عقيده يو چې اسلام د وګړي، ولس، او حکومت نظـام دی. د وګړي ستونزه هم حلوي، د ولـس هـم او د حکومـت او نظـام هـم. څکه نو مونږ بايد د خپل ولس او ټولنې د ستونزو پـه حـل کـې خپـل دين، عقيدې او خپل اسلام ته مراجعه وکړو. مونږ بله حل لاره نلرو او زمونږ ستونزې بله مرجع نشي حلوی. مـونږ بايـد پـه عـادي او بحرانـي دواړه ډوله حالاتو کې اسلامی معيارونو او اصولو ته مراجعه وکړو.

واقعيـت دا دی چـې پـه تيـره مـوده کـې پـه دې هکلـه د تړونونـو، موافقتنامو او نورو مواقفو کې د ايمان او عقيـدې پـه اسـاس د ولاء او براء معيارونه تر پښو لاندې شوي دي. تاسو يـې مجبوريـت بـولئ کـه هرڅه خو واقعيت دغه شی دی. څو چې مونږ خپله معامله او حساب د ايمان او عقيدې په معيـارونو جـوړه نکـړو مـونږ بـه لـه سـتونزو څخـه خلاص نشو. دا چې تاسو هم اوس د امريکايانو او انګليسانو د دښمنی خبره کوئ ډيره ښه ده، د طالبانو او نـورو مسـلحو مخـالفينو د جنـګ خبره خو همدغه بهرنيان دي، دا يو ښه فرصت دی او دا ښه مشترکات دي. دا روان دوه کلونه يو تاريخي فرصـت ده او لـدې فرصـت څخـه بايد اعظمي استفاده وشي، پدې فرصت کې اولويت جمهوري رياست نه بلکې د ولس راټولول او يو کول دي.

نن له نيم افغانستان څخه په زيات کې جګړه روانه ده، د هلمند له لمر پريواته څخه د کنړ تر لمر خاته غاړې پورې د جنګ لمبې بلې دي، داسې ورځ نشته چې يو کور بمبارديږي نه، يو څوک شهيد کيږي نه، يوه ښځه کونډه نشي، او ماشـومان يتيمـان نشـي! دا نـيم افغانسـتان نـه زيات چيرته چې جنګ او جګړه ده ورسره فقر، بې سوادي او ناروغتيا د دوی ژوند تريخ کړی دی، زه په مياشت کې يو ځـل کنـدهار تـه د څمکې له لارې ځم او راځم، لـه ميـدان ښـار څخـه تـر دامـان پـورې دسړک ښې او کيڼ لوري تـه هـره ورځ جګـړه وي، مـوټر سـوځي او مړګونه دي. مونږ به جمهوري رياست څه وکړو چې زمونږ د وطن او ولس دغه حال وي؟ چې د يو تن افغان وينه تـويږي نـو د جمهـوري رياست څه معنا او څّه ارزښت دی؟ که تاسو لس کاله نور هم جمهور رئيس پاتې شئ او ستا د وطن او ولس دغـه حالـت وي نـو د دې څـه خوند او څه مزه؟ اوس بايد ته ځان ملنګ کړې او په هر قيمـت چـې کيږي طالبانو او نورو مخالفينو تـه ورشـې، عـذر ورتـه وکـړې، دينـي تضـمين ورتـه ورکـړې او هيـواد او ولـس د جنـګ او جګـړې لـدې مصيبت څخه وژغورې. څو ته د هلمنـد، کنـدهار، ارزګـان او زابـل د حجرې طالب په يوه ديني تضمين سره قانع نکړې د کعبې د امـام پـه قسمونو به هم قانع نشي، ته دا افتخار وګټه، پټ لاړ شه او په پټه سـره يو دينې توافق ته ورسيږئ. هر ولس اسرار او رازونه لري چې نور پرې نه خبروي. مونږ هم بايد دغسې اسرار ولرو چې هيڅوک پرې خبر نـه وي. له ايران، پاکستان، امريکا، ... څخه پټ د يو ملي سر په حيث بايد طالبانو او نورو مخالفينو سره يوې موافقې ته ورسيږئ.

دا اصلي ضرورت دی او دا يو تاريخي افتخار، که تا دا کار وکړ بيابه دې دا ولس له لاسونو راکاږي او مشر او جمهور رئيس کوي به دې.

په روانو حالاتو کې که هر څوک جمهور رئيس شي هيڅ درد بـه دوا نشي کړی، جنګ او جګړه به همدغسې روانه وي او وطن او ولس به په اور کې سوځي. خو که اولس راټول شو او جګړه ختمه شوه بيا که هر څوک جمهور رئيس شو خبره به اسانه وي او هـيڅ سـتونزه بـه نـه وي. و جزاکم الله خيرا.

زما له خرګندونو سره متصل ښاغلی کرزی بيا ودريد او زما پـه خبـرو يې خورا اوږده تبصره وکړه، که څه هم ويې منله چې همـدا اصـلي خبره ده خو ځان ته يې تبرئه ورکړه چې ډيرې هلې ځلې يـې کـړي دي خو طالبان نور خلک خپل واک او اختيار ته نـه پريـږدي او چـې کوم طالب هم له ده سره رابطه کړې هغه وژل شوی دی. او بيا يـې د مجلس لوری بيرته خپلو خبرو ته وګرځاوه.

د مناقشې وخت نه و نو څکه ماهم نور څه ونشو ويلی. د لمانځه وخت شو، ښاغلي کرزي بله چارشنبه د دوهم مجلس نيټه وټاکله او له ټولـو يې اجازه وغوښته او له مجلس څخه په بيړه ووت، مـونږ هـم راووتـو، يواځې د ارګ امام په وتلو وتلو کې چې لـه کريمـي صيب سـره پـه خبرو وماته په اشارې سره وويل چې "ای خـو اخـواني اسـت و ګـپ اخواني خوده ګفت!" ما ورتـه وويـل چـې "ايـن چـه اخـواني ګـري است؟ اصل ګپ همين است و بايد ميګفتم." او هغه راسره تائيد کړه. د مازيګر لمونځ مو له ارګ څخه د وتو په لار کې وکړ او په ښار کې د خپلو خپلو ځايونو په لور تيت شو.

# گلبرگهای ادبی

## خواجه درویش

مهدی سهیلی

دریغا ازپرستان درم کیش
ندارند آگهی اُزحال درویش
بود خواب سبکباران به دل خواه
و لیکن خواجه می خسبُد به تشویش
هزاربار رنج افگنده برپشت
نهاده گنج باد آورده در پیش
غنی را قصرهای ازنگارست
فقیران را نباشد کلبه یی بیش
دل زحمتکشان در پای پرنوش
شب گنج آوران صحرای پرنیش
به درویشان دلی آرام دادند
غنی ترسنده از بیگانه و خویش
توانگری چیست؟ بیچاری گرفتاری
درون آشفته و غمگین و دل ریش
فقیر آسوده خاطر خنده برلب
توانگر بدزبان بددل بداندیش
توای مجنون زر! با من میامیز
که بیزارم ز دزدان درم کیش
تو و تشویش زردر عمرننگین
من و خواب گوارا درشب خویش!



## گریزازصحبت نادان

هر که با بدان نشیند اگر نیز طبیعت ایشان در او اثر نکند به طریقت ایشان متهم گردد و گر به خراباتی رود به نماز کردن ، منسوب شود به خمر خوردن.

رقم بر خود به نادانی کشیدی
که نادان را به صحبت برگزیدی
طلب کردم ز دانایی یکی پند
مرا فرمود با نادان میپوند
که گر دانای دهری خر بباشی
وگر نادانی ابله تر بباشی

"سعدی شیرازی"

## ځان مه هيروه

کیدای شی د ډیرو خلکو لپاره پورتنۍ جمله دډيرې حيرانتيا خبره وي ، چې خلك هر څه هيروي ،خو ځان نه هيروي .

بـلې ! دا یو تریخ حقیقـت دی چی نن ډیرو خلکو په نړۍ کی ځان هیر کړی دی ،او ددې نه هم پورته ، لاخپل پروردګار یې هم هېر کړی دي.

آیا دا د ځان هیرول نه دي چی ، یو ځوك د خپل ځان په اړه داسـې انګیري چی په ګټه کی روان دی ، ځکه ددنیا ټولـو ملذاتـو او خوندونو ته لاس رسی لري، په داسې حـال کې چې د خپل زړه بیماریو ته ندی متوجه ، او نه یې هم دعلاج او درملنې په لټه کې دي.

آیا ددې بل تاواني ځوك شته ، چی د بدن پادشاه (زړه) یې رنځور وي ،او هره ورځ دې دحسد په لمبو کړیږي ، او دی لااوس هم متوجه نه وي.

هر هغه ځوك چې خپلو عیوبـو ته شا کړي ، او دنورو تیروتنو ته مخه ،په حقیقـت کې همدې شـخص ځپل ځان هیر کړی دی، که څه هم چی د خلکو پـه وړاندې ډيـر ښاغلـی اومنلـی شخصیت هم وي .

## مثبت فكر وكړئ!

يو غټ عالم ته يې يوه ورځ مېرمنې د پېغور په ډول وويل، چې ستاسو ټول خپلوان ستا له مال سره مينه لري او له تاسره كومه خواخوږي نه ښيي، ځكه هغه وخت چې تاسو شتمن يئ او لاس مو ډك وي نو خپلوان مو هم ډېر وي او هرڅوك مو پوښتنه كوي، خو كله چې فقير شئ، مال ونه لرئ نو بس بيا مو نه خپلوان وي او نه د هغوى ګرمې پوښتنې، عالم چې يو هوښياركس و ښځې ته يې ځواب وركړ، چې هسې خبره نه ده، لكه تاسو چې فكر كوئ! زما خپلوان او دوستان ټول د الله شكر دى هوښيار خلك دي او هيڅكله هم د دنيا او مال په غم كې نه دي، كله چې زه مالداره او شتمن يم او هغوى زما كور ته راتګ ډېر كوي نو هغه له دې لامله دى، چې هغوى پوهيږي، چې زه يې عزت كولى شم، خدمت يې كولى شم، ماته د هغوى د راتګ له لامله تكليف نه را رسيږي، بلكې خوشحاليږم، خو كله چې مې لاس تنګ وي او زه خپل ځان ته د يوې مړۍ د پيدا كولو لپاره سرګردانه يم نو هغوى هم زما طرف ته ډېر زړه نه ښه كوي، ځكه زما په حال پوهيږي او نه غواړي چې زه په تكليف شم.

